د کتاب نوم ——— پرونے

لیکواله ——— رابعه ممتاز

د چاپ کال ——— ۲۰۰۳ء

پرېس ——— جدون پرېس خیبر بازار پېښور

بیعه ——— ۱۰۰ روپۍ

کاتب ——— محمد رسول پښتو اکېډمي

# د موندلو درک

۱- یونیورسټي بک اېجنسي

خیبر بازار پېښور

۲- بمعرفت عبدالله جان مغموم

ډاکخانه شاهین ټاؤن

یونیورسټي روډ پېښور

د کور فون نمبر: ۵۷۰۳۳۶۹

# "دُعا"

---

دَ حیا د رڼاګانو ترجمانه
دَ پېړونو پړاوُنو ګهبانه

دَ مغمومؔ صاحب تیارهٔ تیارهٔ کاله کښې
یو ډیوه ده خدایے دې تل لري روښانه

سید صابر شاه صابرؔ
برتھکال

---

په جنازه مې سپین پړونې خور کړئ
زهٔ خو له کوره چې پړونې نهٔ ځم

---

زما د مینې قاتل کړې سر تور
زهٔ په پړونې هر وخت مخ پټوم

---

د بد نامۍ داغ به راپورې کړې تا
پیام چې پړونې له مې لاس راوړهٔ

---

کله مې تور کله مې سپین پړونې
ستا د نظر نه د اسې ځان پټوم

---

# فهرست

# "پروني"

د رابعه ممتاز د شاعرۍ دويم کتاب "پروني" ستاسو په وړاندې دے ـ حقيقت دا دے چې د ممتاز د "سپيلني" کتاب شاعرۍ کښې هر څو فني کمزورۍ لرلې خو دې خبرې نه انکار نۀ شي کېدے چې لوستونکو د فني کمزورو باوجود د سپيلني شاعرۍ ډېره خوښه کړه او کتاب ئې په ډېره مينه واخستو او ووې لوستو ـ د رابعه ممتاز دويم کتاب "پروني" لکه چې د نوم او چاپ په لحاظ ښکلے دے ـ د غسې ئې شاعرۍ هم ښکلې ده ـ زما په خيال چې دې کتاب کښې شاعرۍ د لوستونکو د اعتراض ډېر خيال ساتلے دے او کوشش ئې کړے دے چې هر يو شعر دې په ناپ تول پوره وي ـ

د "پروني" شاعرۍ په هر لحاظ سره د "سپيلني" د شاعرۍ په مقابله کښې په ناپ تول پوره ده ـ په غزلونو کښې نوي خيالات ـ نوي جذبات او نوې استعارې استعمال کړے شوي دي او کوشش په کښې دا شوے دے چې د "پروني" په شاعرۍ کښې جدت راپېدا شي ـ او رابعه ممتاز په خپل دې مقصد کښې تر ډېره حده پورې کامياب شوې ده ـ د جدت سره سره د پښتني ماحول خيال هم

ساتلے شوے دے ۔ د مثال په طوره دا شعرونه به ئې واخلو ۔

ــه چې لوږ د ډيوال ته خپښې نوښکارېږي به دلري
په دې پښتو د ډيوالونو د راز خبرې نبې شي

يا

ــه د مينې سوال جواب چې د ډيوال د پاسه اوشي
کۀ څوک وي که کچه وي د ډيوالونه څومره نونه کړي

د ډيوالونه د پښتنې کلچر يو اهم جز دے او بيا کچه ډيوالونه خو ...... د پښتو خوا د لاروکوڅو اصلي نقشه راکاږي۔ ممتاز په خپلې شاعرۍ کښې د پښتو ژبې دود دستور او د لفظونو د استعمال ډير خيال ساتلے دے او زما په خيال چې دا د دې خبرې ثبوت دے ۔ چې د "سپينې" نه پس شاعرۍ کوشش کړے دے چې د پروني شاعرۍ د فن هغه ټولې تقاضې پوره کړي ۔ چې د کومو په حقله به اکثرو لوستونکو دا اعتراض کولو چې د سپينې شاعرۍ کښې فني کمزورۍ دي ۔

زما په خيال چې د "پروني" په لوستو به د لوستونکو دا ګيله تر ډيره حده پورې ورکه شي دلته به زۀ د لوستونکو د تسلۍ د پاره د رابعه ممتاز د مختلفو غزلونو نه يو څو شعرونه پيش کړم ۔

١ ــ دا مۀ وايه چې زۀ ستا په خبر و نۀ پوهيږم
په تنه تنه ژبه دا رازونه څومره نونه کړي

۳ - د جونګړې لوګے ښه دے
زه يې اوښکو سره مل کړم
محدو ته به زه څه کړم
چې زه يم پکښې پرېشانه

۲ - د ښکلو و شر نکا مې اورې
د سکو مې خبر نه شو
آ زما ساده جانان چې
په کوم جهان کښې اوسېږي

۴ - ما په ګودر ډک منګے بيا کېښو دو
ستا د شملې ول راته ښکارېږي نه

د غزل نه پس د ممتاز د نظم په ميدان کښې تګ هم د دې
د شاعرۍ د پوخ والي دليل ورکوي - حقيقت دا دے چې څنې
څنې نظمونه ئې د خيالاتو او جذباتو په لحاظ زه شاهکار
ګڼم - لکه " لوېتهه " "پښتون" "قسمت"

د ځېنې کلي ئې کورونه او داسې نور ډېر نظمونه چې
ملي شاعرانو به دا موضوعات چېړلي وي - بهرحال د رابعه
ممتاز دويم کتاب " پرهونه " ستاسو په مخکښې دے او
ورسره د ځېن دريم کتاب " د ګلونو پاڼې پاڼې " د ډېر

زر د چاپ کولو اراده هم لري ـ خدای دې اوکړي چې دَ رابعه ممتاز دریم کتاب هم ډېر زر چاپ شي او دَ پښتو په شاعرۍ کښې دَ یو بل نوي کتاب اضافه اوشي ـ

والسلام

عبدالله جان مغموم

# منته

ما چې خپل اولنی کتاب "سپېلنۍ" چاپ کولو نو دا
اُمید مې نهٔ وُ چې پښتانهٔ رونړه خوېندې به زما دَ کتاب سره
دومره مینه اوکړي - خو زهٔ د پښتنو رونړو خوېندو ډېره مننه
کوم چې رونړو عموماً او خوېندو خصوصاً زما کتاب په ډېره
مینه واخستو او وې لوستلو او زما دومره حوصله افزائي ئې
اوکړه چې نن دا دے زهٔ خپل دویم کتاب "پړونے" په دې ځای
چاپ کوم چې رونړه خوېندې به دَ "پړوني" سره هم دومره
مینه اوکړي لکه څومره ئې چې د "سپېلنۍ" سره کړې وه.
او زهٔ به دا دې چوکه شم چې خپل دریم کتاب "ګلونه پاڼې
پاڼې" چاپ کولو ته ملا اوتړم -

زما د اولني کتاب "سپېلنۍ" په لوستونکو کښې دَ
خوېندو شمېر زیات وُ او زما په خیال چې په دغه کتاب
کښې زما زیاته شاعري دَ خوېندو میانو سره د تړلو
مسئلو او کشالو په حقله وه نو ځکه په کښې شمېر کښې خوېندو
کتاب واخستو او وې لوستو او په دې رنګ ئې د کتاب
عزت افزائي او زما حوصله افزائي اوکړه د "سپېلنۍ" د شاعرۍ
په حقله ځنې رونړو دا رائې څرګنده کړې ده چې ځنې شعرونه

د فن تقاضې نهٔ پوره کوي - خو ما دې رونړو ته دا دليل وړاندې
کړے وُ چې زهٔ دَ شعر د فني تقاضو نه زيات مقصد له اهميت
ورکوم په دې وجه مې فني کمزورو ته زيات خيال نهٔ وُ
ورکړے - کيدے شي چې اعتراض کونکو رونړو زما دا دليل نهٔ
وي خوښ کړے نو په دې وجه دې حَل د "پړوني" په
شاعرۍ کښې مې د مقصد سره سره د فني تقاضو هم خيال
ساتلے دے او طمعه لرم چې د لوستونکو دا گيله به ورکه
شي "پړونے" هم زما غزلونو او نظمونو مجموعه ده -
په نظمونو کښې زما خوښ موضوعات کلے کور - نغرے
او جارگے دي - او يا مې لور، خور، مور او زامن دي - په
اکثرو نظمونو کښې ما دغه کردارونه د موقعې په مناسبت
سره ستائيلي يا کنلي دي - خو ستائنه په کښې زياته او
غندنه په کښې کمه ده -

ما په خپله شاعرۍ کښې مينې له اهميت ورکړے
دے او کوشش مې کړے دے (هغه د پيسو گوهر يو نظم
دے) زهٔ غواړمه چې ټوله دنيا مينه مينه شي" چې
د مينې پيغام هر چا ته اورسوم او د هر لوستونکي په
زړهٔ کښې دَ مينې دا پيغام ځائے اونيسي -

د لوئے خدائے نه دا طمعه لرم چې ښتانهٔ رونړه
خوښندې به د "پړوني" سره هم دومره مينه اوکړي لکه
چې د "سپيلني" کتاب سره ئې کړې ده او زما به دومره

حوصله افزائي اوکړي چې خپل دريم کتاب "ګلو نه پاڼې پاڼې" هم زر تر زره چاپ کړم - انشاء الله

رابعه ممتاز

# خانه کعبه

د الله کورې تاوېږم لـــه تا
خانه کعبه يې زارېږم له تا

د الله کوره ارمان مې ته وې
او د خوږ زړګي درمان مې ته وې

لکه ګل هسې غوړېږم په تا
د الله کورې تاوېږم له تا

د الله کوره سودا مې ډېره
درنه تاوېږم ګناه مې ډېره

لکه د شمعې ژړېږم په تا
د الله کورې تاوېږم له تا

د الله کوره عزت دې ډېر دے
په ټول جهان کښې شهرت دې ډېر دے

لکه د پرخې ورېږم په تا
د الله کورې تاوېږم له تا

ارمان مې نشته د دې نه سېوا
چې بس راځمه مکې ته بیا بیا

چې هر چکر کښې ځارېږم له تا
د الله کورې تاوېږم له تا

ښار د مکې به هېرومه څنګه
دا باقي ژوند به تېرومه څنګه

ممتاز به څنګه صبرېږم له تا
د الله کورې تاوېږم له تا

***

# نعت

## د مدینې منورې نه د رخصتۍ په وخت

# ځم د مدینې نه زه

داسې راته ښکاري زړه مې بیل شو د سینې نه زه
ځم د مدینې نه زه

څو مره موده ما په دغه طمعه تیره کړې وه
ښکله ورځ مې یو کړې وه
ډېره وار خطا شوم چې خبر شوم د دې ښتې نه زه
ځم د مدینې نه زه

زړه خو د مودو نه د راتلو په طمعه ناسته وم
هر غم نه زه خلاصه وم
څنګه به ځان صبر کړم د دې خوږې قسمې نه زه
ځم د مدینې نه زه

ما خو د نبي صلی الله علیه وآله وسلم دربار کښې لنډې ورځې تېرې کړې
څو ورځې مې تېرې کړې
داسې راته ښکاري تږے ځم ددې چينې نه نن
ځم د مدينې نه نن

ماوې چې نبي صلی الله علیه وآله وسلم به د زړه حالونه وایمه
شپه ورځ به ښکیا یمه
زړه مې ډېر خوږېږي چې زه ځم پاکې روضې نه نن
ځم د مدينې نه نن

★★★

# دَ حوا لور

ستا لقب دَ فرشتو دے
په جنت کښې تهٔ پېدا ئې
تهٔ خواهش د بابادم وې
په نامه باندې حوا ئې

ستا د پښو لاندې جنت دے
نیک اولاد له لوئے نعمت دے
تهٔ رېشتیاء چې بې بها ئې
په نامه باندې حوا ئې

کهٔ تهٔ لور ئې نو رحمت ئې
کهٔ تهٔ خور ئې نو راحت ئې
د خاوند د کور رڼا ئې
په نامه باندې حوا ئې

د ځيل کور ځي څو کيداره
د بچو ځي ته غمخواره
هر بچي باندي فدا ځي
په نامه باندي حوا ځي

د انسانانو په تخليق کښي
ځان سره کړي خداے شامله
په رضا د خداے رضا ځي
په نامه باندي حوا ځي

چي ستا کور پري آباديږي
مال او سر دي که زاريږي
ته د صبر انتها ځي
په نامه باندي حوا ځي

هغه کور گل و گلزار شي
چي ستا په کښي روزگار شي
ته د خوږ زړگي شفا ځي
په نامه باندي حوا ځي

هره سخته تېروې ته
څو نېل کور اباد وې ته
ته د صبر انتها ئې
په نامه باندې خوا ئې

د کور چې څه بامبېر وي
که هر څومره په تا ډېر وي
په خندا ئې ته بښکلا ئې
په نامه باندې خوا ئې

په تخليق کښې د انسان
خداے ستا واخست امتحان
په رضا د خداے رضا ئې
په نامه باندې خوا ئې

ممتاز دا سې کار او نه شي
ستا نامه بد نامه نه شي
ته ساده د دې دنيا ئې
په نامه باندې خوا ئې

ځان ساته له هره توره ... د دنيا د هر پېغو ره
همسې ولې وار خطا ئې ... په نامه باندې خوا ئې

بیا د اوبنکو زور دے تپوس مهٔ کوه
وران مې دَ زړهٔ کور دے تپوس مهٔ کوه

تول بدن لوګے شو لمبه نهٔ شومه
دا لاختکه اور دے تپوس مهٔ کوه

تهٔ ئې چې بېګا سبا کتو له تلې
هغه محفل خور دے تپوس مهٔ کوه

سترګې مې په ډېرې ژړا سرې شولې
ورک د کلو تور دے تپوس مهٔ کوه

مهٔ کوه ممتاز پسې بیا مهٔ کوه
هر څوک ترې مرور دے تپوس مهٔ کوه

## 24

په تورو تیمو شپو کښې دیدنو نه څومره خوند کړي
یو بل سره چې روشي - الوظو نه څومره خوند کړي

دا مهٔ وایه چې ستا په دې خبر وزهٔ پوې نهٔ شوم
په تته پسته ژبه بیانونه څومره خوند کړي

د مینې سوال جواب چې دیو بل سره پرې روشي
که څه دي که کچه دي دیو الونه څومره خوند کړي

زمونږ د محبت قصه هم دلته نن پوره شه
زهٔ ستا یم تهٔ زما یې دا قولونه څومره خوند کړي

ارمان چې هغه تیر ساعت څو بیا په بیرته راشي
د مینې دکتاب ذاپهٔ بابونه څومره خوند کړي

ممتاز په محبت کښې تا نه دوستو پاتې نهٔ شي
راځه د وفا لار کښې منزلونه څومره خوند کړي

## 25

راشه آشنا عمر مې کم دے راشه
د زړهٔ دنیا کښې مې تورتم دے راشه

ما خو څېل زړهٔ په تسلّو اوده کړو
خو په ژړا دسترګو نم دے راشه

نن چې مُسکے راته له ورایه شولې
د تندی ېک مې جوړې سم دے راشه

آسمان کښې ستورې په خندا شو ګُلله
زما په زړهٔ کښې خو ماتم دے راشه

ممتاز زړګے مې په سلګو اوده شو
ځُکه درزارے ئې لړ کم دے راشه

⋆⋆⋆

# د چېل کلي خړ کورونه

نن مې بیا په زړه ورېږي ، د چېل کلي خړ کورونه
هغه کږې وږې لارې ، هغه بر کوز مالتونه

ادبر د امان په څوا کښې ، مونږه لوبې به کولې
نه په مونږ د چا آواز وه ، نه زمونږ په چا څڅکار وه

مور و پلار به تپوس نکړو ، چې ته کوم ځائې ئې ولاړه
دا جمات دے که حجره ده ، چلن لاړه ده که ښاره

هریو کور کښې به ماما وه ، هریو کور کښې به بېو وه
دا ټول کلے بس یو کور وه ، دا ټول کلے رور او خور وه

که به چا کره ښادي وه ، د ټول کلي خوشحالي وه
که به چا کره څه غم وه ، هریو کس به سترګې نم وه

که به جنګ وه که جهګړه ، یا به بل څه مسئله وه
مشران به ټول را ټول شو ، د هغو به فیصله وه

کشران به یې ملامت کړه، پوئ به ئې دوئ په هر صورت کړه
روغه جوړه به زر اوشوه ، دشمني به پاتې نهٔ شوه

مسافر که به څوک راغلو، چې به ئې کلی کښې خپل نوه
دجړې تپوس به یې اوکړو، بیا به هلته کښې میلمه وه

دهرچا به دغه فرض وه ، چې دے اوبدے پاتې نهٔ شي
کهٔ وي پیان اوکهٔ شملې وي ، میلمستیا دې ددهٔ اوشي

کله کله به مې پلار هم ، کورته راغلو په تلوار هم
چې جمات کښې مسافر دے ، چې راغلے د سفر دے

بندوبست ددوډۍ اوکړئ ، څه پاخهٔ کړئ څه توده کړئ
کورې اوبدے پاتې نهٔ شي ، زمونږ کلے به ئې خوښ نشي

نهٔ کوربه خفه کېدلو ، نهٔ میلمه به شرمېدلو
ډېره مینه ډېر عزت وه ، دخلوص نږدې الفت وه

نن مې بیا په زړهٔ وریږی
دخپل کلی خړ کوروسنه

زما هغه وخت یادیږي ، هغه خلق مې یادیږي
هغه خلق چرته لاړل ، هاغه خړکوروندوران شول

څه بنګلې شوې خړکوروند ، د ښو ښینتو برجو سته
اوچه لارې ښې شوې ، ډیر چا بیلې کوټې شوې

ډیوبل نه ځان اونغاړي ، خپل غمو ځان له ژاړي
ډیر چا شو ډیر کاروسته ، ډیر چا شو بیل کوروسته

نه د ورور خور محبت شته ، نه د پلار مور څه عزت شته
په نفرت هر چا سته ګوري ، ډیر چا نه دوی مروروي

هر یو کس د بل نه تنګ دے ، خپل پردی سره په جنګ دے
زما دوی ته زړه تنګیږي ، زما خپل کلے یادیږي

زما هغه وخت یادیږي ، زما هاغه خلق یادیږي
خدایه دا څنګه ژوندون دے ، هر یو کس د ځان نه تنګ دے
ممتاز داسې ځان ځانې شوه
په ژړا هم سود نه کیږي
نن مې بیا په زړه وریږي
د خپل کلي خړ کوروسته

★★★

# مشران

چې زموږ مشران وو هغه څه شو
د دې کلي چې زبرګان وو هغه څه شو

چې بې شانه مینه یې موږ سره کوله
چې په موږ به ډېر ګران وو هغه څه شو

مسئلې چې به یې زموږ حل کولې
نن هر کار ته موږ حیران یو هغه څه شو

چې د هر غریب د پاره مور و پلار وو
چې د ټول کلي خپلوان وو هغه څه شو

مېمتان موږ به چا له څه تسلّي ورکړو
موږ خپله ډېر پرېشان یو هغه څه شو

★★★

30

زما زړه ماته کاسه ده
پرتې لور په لور ټوټې دي

د دردونو د غمونو
څه غمرنې شان قصې دي
کله صبر کله اوښکې
ننداره د زړه کومه

څه پرېشانه دي وختونه
څه پرېشانه ورځې شپې دي

دا د اوښکو سېلابونه
حوصلې به مې لاهو کړي

په علاج ئې نه پوهېږم
د ژوند سختې مرحلې دي

31

ستا د مينې مشال لاس کښې
په تيرو کښې يم روانه

تا به کوم ځائے کښې پيدا کړم
اے زما خوږه جانانه

خدائے د زړونو خبردار دے
ته دې نه خبر نهٔ يې

زهٔ به تا له خدايه غواړم
اے زما ياره نادانه

د جونګړې لوږې ښهٔ دے
زهٔ يې اوښکو سره مل کړم

مخ چې را نه پټ نهٔ کړې خطا نشې
مړه به شم د غمه بې وفا نشې

تهٔ خو زما زړهٔ يې زما مينه يې
پام کوه جانيه د بل چا نشې

ستا په وعدو بيا دلته راغلے يم
هسې نه پرون پښانې رانشې

---

ستا د غمونو سره لوبې کوم
مړاوو ګلونو سره لوبې کوم

ستا د راتلو په انتظار کښې ګُله
د ډېرو فکرونو سره لوبې کوم

بې د غمونو چې نور هیڅ نهٔ لري
داسې بختونو سره لوبې کوم

د خپل زړګي د تسلي د پاره
ستړو وختونو سره لوبې کوم

د بېلتانهٔ په تورو شپو کښې ممتاز
د زړهٔ زخمونو سره لوبې کوم

***

# 34

د استا ډرا تلو لارې کله ښې ډېرې اوږدې شي
چې نه دې سوال جواب وي نه راتګ دې بیا پېدې شي

دا څنګه محبت دے ټول زما د پاره خواست دے
اول دې خدائے نه غوارم بیا رهبار باندې جرګې شي

زه جواب درلېږې نکړم ، جانیه خپله راشه
زړه مې تا نه ګیله من دې چې ورکې مې ګیلې شي

چې لوړ دېوال ته ختږې نو ښکاریږي تې به دلرې
په دې چیتو دیوالونو د راز خبرې ښې شي

راځه چې د مودو ګیلې پخلا کړو هوارې
چې خندا خندا ژوندون شي رنګینې ورځې شپې شي

دا ستا خفګان په ځای دې، خو زما به هم لږ واورې
چې ته راشې زما خوا له نو یارې دې ګیلې شي؟

ممتاز درته دا نه وایي راځه چې صلح اوکړو
ستا مینه سیلانۍ ده په هر ښکلي مخ لیسې شي

***

# نوې دنیا

راځه چې دواړه ځان له یوه نوې دنیا جوړه کړو
دې دنیا نه لرې یوه ښکلې دنیا جوړه کړو

دې دنیا کښې هیڅ نشته غمونو دې فکرونه دي
دې دنیا کښې هیڅ نشته دردونه تکلیفونه دي

دلته مینه نشته خدائیګو خوشې هوسونه دي
دلته مینه نشته دلته خوشې مطلبونه دي

دلته څوک د مینې اصلیت نه هم خبر نهٔ دي
دا خو ځناور دي تهٔ به وې هېڅ و بشر نهٔ دي

راځه چې دواړه ځان له یوه نوې دنیا جوړه کړو
دې دنیا نه لرې یوه بیله دنیا جوړه کړو

یوه داسې دنیا چې پکښې دواړه زړونه یوشي
یوه داسې دنیا چې پکښې دوه روحونه یوشي

هلته کښې به تهٔ او زهٔ د یو بل څنې قربان شو
هلته کښې به مونږ ٔه د چېل خوږ زړونو درمان شو

راځه ممتاز چې دواړه یوه نوې دنیا جوړه کړو
دې دنیا نه لرې یوه بشکلې دنیا جوړه کړو

---

ستا دمینې مشال لاس کښې
پهٔ ښیرو کښې یم روانه

تا به کوم ځائے کښې پیدا کړم
اے زما خوږه جانانه

خدائے د زړونو خبردار دے
تهٔ دې نه خبر نهٔ یې

زهٔ به تا لهٔ خدایه غواړم
اے زما یاره نادانه

د حبونګړې لوږې ښهٔ دے
زهٔ یې اوښکو سره ملګرم

محلونه به زهٔ څـهٔ کړم
چې زهٔ یم پکښې پرېشانه

ممتاز ستا نصیب خراب دے
کهٔ تهٔ فکر ورته اوکړې

خپل جانان دې تپوس نهٔ کړې
گیله مهٔ کړه د بل چانه

★
★★★

# 40

ذړه مې هر وخت ډوبېږي
هیڅ علاج يې نه ښکارېږي

دې خپل ژوند ته یم حیرانه
چې په څه سخت تېرېږي

ناکړدې دې چې را یاد کړم
د باران په شان ژاړم

د غمونو په ګرداب کښې
مې د ژوند کشتۍ تاوېږي

بې حسي او بې قدري خو
اوس د خلقو کاروبار شو

د دنیا په دې بازار کښې
اوس هم دا سودا خرڅیږي

ستا یادونه زما زړه کښې
و آسمان له ستورو ډېر دي

ته خبر نه يې جانیه
زما زړه څومره خوږیږي.

ممتاز ټوله دنیا چاڼ کړه
یو همدرد یې پیدا نه کړو

چې غمونه ترینه واخلي
داسې څوک نه پیدا کیږي

***

# تمغهٔ امتیاز
# دِ مبارک شه

خپل خاوند عبد الله جان مغموم ته د تمغهٔ امتیاز په اخستو
د عقیدت پېرزوئنې ——— (ممتاز)

اے د لوړ همت انسانه
ستا همت ته مې سلام دے

اے په هر څه مهربانه
ستا عظمت ته مې سلام دے

ته به کلی په وطن کښې
چې په ښهٔ نامه یادېږې

کهٔ دې دور کهٔ دې ترېور دے
ته د هر چا پکار ېږې

تهٔ دکومې خاورې جوړې
تا کبنې کبر غرور نشته

پهٔ دشتیا چې فرشته ئې
ستا کتو کبنې ضرر نشته

چې هر ځائے کبنې تهٔ ئې یادشوې
پهٔ تا فضل د الله دے

مبارک شه سلامت شه
دا آواز له هرې خوا دے

زهٔ غازي، شعیب ته گورم
خوشحالي نه پهٔ خندا دي

چې ضیاء مې هم کره شو
نعمتونه د الله دي

---

غازي، شعیب، ضیاء د زامنو نومونه دي.

شکر او باسمه ډېر زهٔ
خدائے تعالیٰ ته پهٔ سجده شم

ټول غمونه راسنه هېر شی
پهٔ اللّٰهٔ اللّٰهٔ اخته شم

خوشحالی دې خدائے نصیب کړه
اے زما د ژوند ملګرېه

مبارک شه مبارک شه
د ممتاز د سر تیکرئیه

خوږندو رونړو او بچوته
دا اعزاز دې مبارک شه

ته لائق د دې اعزاز وې
دا امتیاز دې مبارک شه

نهٔ به د باران نهٔ د ږلۍ نهٔ د سیلۍ قیصې
ما ته به ته نکړې اے اشنا د بې وسۍ قیصې

زهٔ به ستا خبرو ته بېګاه صبا غوږ غوږ شمه
ته که پکښې نهٔ کوې آشنا چرې پر دې قیصې

ما سره خو شپه ورځې دا غم دے اے لالیه چې
هسې نه څوک اوکړې ستا زما د اشنایۍ قیصې

یو ځلې به مونږ که هغه تېر وختونه بیا راشي
او به کړو یو بل ته د ځوانۍ او د مستۍ قیصې

مینه خو سور اور دے سرې لمبې دي زهٔ ئې اوسومه
ما سره خو نشته د خندا او خوشحالۍ قیصې

نن که چرې ژوندون وه د هغه وعدهٔ رشتیا شوله
او به کړي ممتاز ته خو د مینې پخوانۍ قیصې

★ ★ ★

خپل قسمت نه خبر نهٔ وُم
چې به داسې خراب هم وي

چې آشنا به جُدا کیږي
ژوند به داسې عذاب هم وي

کهٔ پهٔ لنډو لارو لاړ شې
نو منزل ته نهٔ رسیږې

د پښتو پُولو پهٔ لار کښې
لختې هم وی اعراب هم وي

ستا تدبیر به کار او نهٔ کړي
د تقدیر مالک خو هم شته

د تنـدې ذکرښـو ځان لـه
یو جوړ شوے کتاب هم وي

دخدائے ورکـړه بې بهـا ده
ممتاز شک پکښې اونهٔ کړې

د غریب عـاجـز نادارو
پهٔ تنـدې کښې محراب هم وي

توکّل پهٔ الله اوکـړه
دا روان شـه د زړهٔ سـره

پهٔ دې ستکو تورو شپو کښې
ځلیدونکے مهـتاب هـم وي

***

# قسمت

هغه پېغله چې ډېره موده دیوٌ پهٔ نامه ناسته وه - او بیا بل ته ورترغاړه کړې شوه - (ممتاز)

ستا پهٔ نامه ناسته اوس د بل شومه
زهٔ لکه کوډې د اول بدل شومه

اُوسوُزه قسمت دلو نو اُوسوزه
څنګه رنګ پهٔ رنګ خاورې خجل شومه

زهٔ پټه لوګې پټه لمبه شومه
زهٔ چې د نصیب پهٔ اورجل بل شومه

تخت او بخت خو دواړه د خدائے لاس لاکښې دي
سترګې ددې ژوند د سخت مزل شومه

هره یوه ورز د بلې سخته وي
پاڼې پاڼې زړه لکه د ګل شومه

ګرځم په خیالونو په سوچونو کښې
څنګه ناخبره زه د بل شومه

کړښې د قسمت ممتاز ورانیږي نه
شومه زه واده خوښه کوم چل شومه

# خیالونه وسوسې

یم په کومه هوا مستانه
زه په کوم خیال کښې روانه

د دنیا په دې بازار کښې
ناخبره د خپل ځانه

ما وې چې تل ځواني به وي
په رنګ رنګ خوشالي به وي

نه به غم نه به فریاد وي
هر یو کس به په زړه ښاد وي

مور پلار به وي خپلوان به وي
خوانده شکلي دوستان به وي

هم به کور هم به مالت وي
ډیر به مینه محبت وي

خوچې دو رو وخت تیرېږي
نو غمونه مې ډیرېږي

نه مې پلار او نه مې مورشته
نه مې رورشته نه مې خورشته

خوندي روڼه مې جدا دي
هغوی ټول دبلبل چا دي

تصوّر کښې مې کرځیږي
دبابا کور مې یادیږي

په خوبونو کښې مې راشي
په ژړا مې شپه سبا شي

دې نه پس به څه ربنا شي
دې نه پس به څه بنکلا شي

اوس دَمرګ راسره غم دے
اوس مې خدايګو عمر کم دے

ممتان خدائے دې عفه اوکړي
اوس خو هر وخت دا دُعا کوم

———— ★ ————

تاله به لالیه په یمو درشم
تاله به په غنو په اغزو درشم

ته د اختر میاشتې ښخوږې ته
ستا کتوله زه به په بلو درشم

ماته پخوانۍ خبرې مه یادو
زه به هم بیا جانه په کیلو درشم

ستا خفګان چې یاد کړمه پښیمانه شم
زه به اوس لالیه په جرګو درشم

ځان به په پروني کښې راپټ کړمه
زه به دې دیدن له په پردو درشم

تاسره ممتاز چې وعده کړې ده
تاله به د غنو په چیو درشم

کور دَ بېلتون خورشه دای څخهٔ اوکړهٔ
اوس مې دے دنیا کښې زړهٔ لګېږي نه

زهٔ دې پهٔ دیدن پسې رنځوره شوم
ستا د راتلو لاردهٔ چې لنډېږي نه

راشه داختر ورځ به رنګینه شي
بې لهٔ تا نه زړهٔ مې خوشحالېږي نه

ماله چې راځې نو پهٔ رڼا راشه
تکو تورو شپو کښې دیدن کېږي نه

ما پهٔ ګودر ډک منګے بیا کښېنودو
ستا د شملې وَل راته ښکارېږي نه

ستا زما خبرې دي اورې داورې
ويمه چې رېبار دي حصاديږي نه

زه به د اګيله درته بل وخت اوکړم
خدائيګو په ګيلو څوک خوشحاليږي نه

ماسم د ما بنامه اوربل خور کړلو
راشه په تياره کښې څوک ښکاريږي نه

کله وې درحم او کله نه د رحم
ښه شوه چې ممتاز لېونے کيږي نه

***

# دَ ګلو لخته

پهٔ لاره چې ټوله رپېږي کنه
پېغله یواځې دهٔ وېرېږي کنه

حیا نهٔ ډکې سترګې سنهٔ او چتې
مزکې ته ګوري چې شرمېږي کنه

د تور اُوربل ګلان یې پټ کړهٔ دو رو
د روڼو خور دهٔ بدنامېږي کنه

پهٔ سپینو لېچو یې بنګړي مزه که
دَ ګلو لخته دهٔ ماتېږي کنه

پړونې یې تاوٴ کړو له ځان نه ممتّان
کلی دهٔ پاڼو کښې پټېږي کنه

★★★

ما ته نو په سترګو اشارو خبرې مکوه
ما ته دَچا مخکښې د ګیلو خبرې مکوه

هر څه چې ته وائې راته اووايه په ډاګه نن
بیا راته په لارو په کوڅو خبرې مکوه

ستا زما روزګار د ځان په دې باندې لږ پوې کړه ته
ما سره د خلقو د جرګو خبرې مکوه

اووايه په ډاګه نن چې هر څه ستا په زړه کښې دي
بیا د ښوسو لاندې د اوبو خبرې مکوه

ژوند خو زما ټیل دے په نښته باندې به ختم شي
ما ته دَدُعا او د خیرو خبرې مکوه

زه د ممتاز مخکښې په شپو شپو ژړلے شم
ما ته د سلګو د اسویلو خبرې مکوه

★★★

# دور

دا زما د سترګو تور دے
دا زما د ابسي زوئ دے

په آباد د بابا کور دے دا زما د مینې رور دے
ما به غبن کېنې لوبولو، ما به هر ځائے ګرځولو

دا زما د زړهٔ ټکور دے
دا زما د مینې رور دے

چرته دے خوشحالېدلو، ما به هلته رسولو
په دنیا مې د مور کور دے، دا زما د مینې رور دے

دے چې لوئې شولو عاقل شي
نو زما حق کېنې جاهل شو

اوس زمانه ئې زړهٔ تور دے
دا زما د مينې دور دے

زما هم ترې زړهٔ خفه شو د ګېلې نه پس ګيله شو
چې بې وچې دے مرور دے، دا زما د مينې دور دے

دور د خور لوبه اسره وي
خپل تبر کښې په داده وي

په اباد د بابا کور دے
دا زما د مينې دور دے

چې په يو غېږ کښې لوئې شوي
هغه کله جدا شوي

د شيطان هسې مخ تور دے
دا زما د مينې دور دے

---

زړۀ مې د ے د غوښې څۀ د کانړي نه خوجوړ نۀ د ے
ستا غمونو دل کړو ا ے لاليه نور د زور نۀ د ے

تۀ خو زما ژوند يې زما زړۀ يې زمامينه يې
څۀ وايې زړګيه زړۀ مې تا نر خدائيګو تور نۀ د ے

کله چې مې ياد شې تړ مې اوښکې مې لۀ سترګو چې
مابه پۀ دې پوې کړې ستا پۀ مينه کښې خوا ور نۀ د ے

تۀ چې چرته خوښ يې زۀ به عمر تېر وم هلته
زۀ به ستا رضا کړم جانڼ دې کښې څۀ پېغور نۀ د ے

تۀ چې د ممتاز سره د ټول عمر لوظونه کړې
دا دنيا فاني ده دلته ټول عمر له کور نۀ د ے

***

ستا د مینې د دریو ښکو په قلار کښې یمه ناسته
شپه ورځ پکښې تېرومه د پردې خو بست نه یمه خلاصه

د آسمان ستورو ته ګورم، ستا په کټ به دوی پرقیږي
جانان ځو مړه بختور دي درته ګوري بې وسواسه

ته چې کوم وطن کښې اوسې زما زړه به تاسره وي
ژوند مې تاسره تېرې ستا زما مینه ده راسته

ما د زړه کچکول کښې ایښې ستا د مینې خیراتونه
بنه ګرزان په زما کینږي که یم ناسته که هم ملاسته

په سینه باندې به درشم ستا مقام که را معلوم شو
د ممتاز دومره همت شته هسې نه چې ده ناراسته

★★★

# دَاختر ورځ

دا چې دې خلې اختر وه څومره ښه وه
چې راغلے مې دلبر وه څومره ښه وه

ما د ژوند خوانه په واړه قربان کړې
شپه شوقدر ورځ اختر وه څومره ښه وه

مسافر اشنا چې راغلو زۀ دا ډه وم
که به کور که به بهر وه څومره ښه وه

ما په لپو به منګے راډکولو
دے چې ناست به په ګودر وه څومره ښه وه

د ممتاز لاس به يې نيولے وه په مينه
څومره ښکلے ما زيګر وه څومره ښه وه

***

ستا مینه مې پکار ده نور مې هیڅ نهٔ دي پکار
دنیا دې ستا نصیب شي زما نشته په څهٔ کار

بېګاه مې د آسمان ستوري په څېره خوله شمېرل
مطلب مې یل څهٔ نهٔ وُ ومه ستا په انتظار

هر څهٔ رقیب وائي زهٔ له تا کله صبرېږم
بس ته مې د ذرهٔ سرې نور په چا نهٔ کړم اتبار

د مینې په یا غنچه کېنې مې یو ګل په تخینه کړے
ابدم به ځاپه اوربل کېنې یا جوړوم به تر ینه هار

ستا مینې ممتاز خېل ړوند بانډې ستوما نه کړه
یو ته زما پکار ئې نور مې هیڅ نهٔ دي پکار

د آسمان لمنې سرې شوې
د ماښام تېږې خورېږي

ستا په طمعه یمه ناسته
شپه به څهٔ رنګې تېرېږي

د راتلو تشکل دې اوکړه
چې وعده دې هېره نهٔ شي

بې له تا دَ زړګي سره
په ما خدایګو څهٔ چل کېږي

د سحر نه تر ماښامه
زما دغه بس یو غم وي

هسې نه چې لوظه نهٔ شې
ستا اقرار دروغ ښکارېږي

د ممتاز به څومره ژوند وي
چې ستا نور انتظار وکړي

بس روس خپل وطن ته راشه
ذړهٔ مې تا پسې شوکېږي

په هرڅۀ به تېرېږي - د نیک خوا کمے دې نۀ وي
چې زړۀ دې پرې رغېږي - د اشنا کمے دې نۀ وي

دا کور دې اے جانیه - تل په تا باندې آباد وي
چې ته پکښې کوځېږې - د دنیا کمے دې نۀ وي

باغونه سرۀ ګلونه دې همیش تروتازه وي
بلبل دې په چغار وي - د بورا کمے دې نۀ وي

د ستورې د آسمان دې همیشه داسې پرقېږي
باران دې د رحمت وي - دَ بریښنا کمے دې نۀ وي

ما مۀ پرېږده یواځې اندېښنې را نه چاپېر شي
هرڅو کۀ خلق ډېر وي - خو بس ستا کمے دې نۀ وي

ممتاز د پښتنې مېرمن - پړونے بدنام مۀ شه
کۀ ځوانه کۀ زړه وي - دَ حیا کمے دې نۀ وي

وارخطا وارخطا گرځم
سودائی شوم نهٔ پوهېږم

تهٔ پهٔ کومه دړه لاړې
زهٔ پهٔ تا پسې گرځېږم

ما پهٔ دې خبره پوې کړه
دَ اُلفت انجام به داوي

مینه اُور دے سُور انگار دے
زهٔ شپه ورځ پکښې سوزېږم

وُم گلونو ته پهٔ طمعه
د چمن مې ابیاری کړه

گُل زما نصیب کښې نشته
زهٔ پهٔ دې باندې پوهېږم

***

# خپل خپلوان

را ځئ خپلو خپلوانو چې نن ډېره مینه اوکړو
مرګ نه خو را روان دے ارمانونه به بیا اوکړو

چې ژ اړو په یو بل پسې بیا روستو توبه څهٔ
په ژوند به ټول یو ځائے شو دیدنونه به نښهٔ اوکړو

هغه ورانې مسئلې او قصې به کړو راسمې
چې موږ په یو ځائے کېږو لږ سوچونه به په اوکړو

منم چې څو ګیلې به مو وي زړونو کښې یو بل ته
یو ځل چې مخامخ شو نو کارونه به ټول ښهٔ کړو

د استاد زړهٔ خبر چې زما د پاره مرګ وهٔ
زما پوهے ګیله ده نو رجنګونه به په نهٔ کړو

دا ځئ چې بیا یو ځائے شو دیو یل سره په مینه
ګیلې مانې به نه کړو حوصلې به ډېرې اوکړو

د ملک او قام د پاره د ښېګړې کار پکار دے
چې یاد شو په دنیا کښې تل بیا ونه به ډېر اوکړو

ممتاز د ښځو خلقو به څنګه ښه مثل وه
او به په ډانګ بیلیږي نه ، نعره به دغه اوکړو

# لوپټه

ته چې په سر لوپټه واچې ډېره ښه ښکارېږې
پښتنې پېغلې د حیا یوه نمونه ښکارېږې

د بنګړو ډک لاس چې اوچت کړې سر دې پټ کړې ګلې
الله ګواه دے ماته سمه فرشته ښکارېږې

د پلار په مخکښې چې ګرځېږې لکه حوره چې یې
چې سر دې پټ وي د رورخوا کښې ګلدسته ښکارېږې

دا لوپټه خو ستا د سر د څه له ګورې ورته
په سر یې واچوې چې ښه پټه په پرده ښکارېږې

شرم حیا دې ستا په خټه کښې اخلې وي بس
په دې خویونو به هر چا ته تر ټه درنه ښکارېږې

په سر دې واچو لوپټه ځان پکښې پټ کړه ګلې
ممتاز درزا رشه ګوره څومره خوشته ښکارېږې

***

# خط

ما ته دې په خط کښې خدائے خبر چې څۀ ليکلي دي
هيڅ پرې نۀ پوهېږم چې دې څۀ راته وئيلي دي

کۀ دا دې وي ليکلي چې ما پسې ژړېږه مه
دا خوشې خبرې خو ما ډېرې اورېدلې دي

ستا نصيحتونه زۀ پلو پورې ټول اوتړم
ته چې راپه ياد شې ټول مې هغه وخت شيندلي دي

خپل وطن ته راشه د جوارو ډوډۍ ډېره ده
ولې دې جانانه کړې بل ځائے اړولې دي

دا د ځوانۍ شپې ورځې به هېڅرې بيا رانشي
تا پسې ممتاز ډېرې په سلګو سلګو ژړلې دي

---

د ژوند جونګړه کښې ویرېږمه زهٔ
دا بې لهٔ تا وار خطا کېږمه زهٔ

د هر ارمان ګرېوان شلېدلے وینم
کهٔ په محل کښې هم اوسېږمه زهٔ

ما ته جوړه جوړه غمونه ښکاري
تا نه چې کله جدا کېږمه زهٔ

د قدردانو قدر دلته نشته
داسې وطن کښې حصارېږمه زهٔ

د بلبلانو جالې مهٔ ورانـوئ
پهٔ دې ګلانو خفه کېږمه زهٔ

لاليـه مالـه نـاګهانـه راشـه
پهٔ انتظار کښې دې کړېږمه زهٔ

پهٔ ممتان هغه وخت قيامت وي جانه
تانه چې څهٔ وخت جدا کېږمه زهٔ

~~ ★★★ ~~

زما د زړهٔ په آئينه کښې ستهٔ يې
د ژوند کتاب هرې صفحه کښې ستهٔ يې

دا بې لتا خو ځان نيمګړې ګڼم
زما د ژوند هرې لمحه کښې تهٔ يې

بغير لتا به ژوندون څنګه تېروم
زما د زړهٔ هرې حصّه کښې تهٔ يې

زما د مينې امتحان اخلې ستهٔ
زما د ژوند هرې قيصه کښې تهٔ يې

ممتاز دې اوس د زړهٔ پردو کښې پټ مې
چې د رقيبانو نه پرده کښې ستهٔ يې

# حُسنِ خلق

کینه ورد ي ذوَر ورد ي حُسنِ خلق
ډېر په کبر په غرور دي حُسنِ خلق

چې په وینو د انسان هم نهٔ مړېږي
په دنیا کښې څناور دي حُسنِ خلق

چې دنیا څوک د عقبیٰ د سره زار کړي
ګوره څومره بختور دي حُسنِ خلق

چې بېګاه سبا د خدائے یاد کښې مشغول وي
خدائیګو هرچانه بهتر دي حُسنِ خلق

ممتاز نن ورشه پخپله ئې بخلا کړه
چې لهٔ تانه مرور دي حُسنِ خلق

***

شته په سپرلي کښې ډېر ګلونه شته دے
څو ما د پاره ډېر غمونه شته دے

سپينې سپوږمۍ ځکه ميګے جوړې
ستا په زړګي کښې هم داغونه شته دے

د خپل اوربل دا پېچ وخم چې ګورم
دومره قسمت کښې زما ولونه شته دے

ډېر څوکند ونه خودې اوکړه جانه
لا د ممتاز زړهٔ کښې شکونه شته دے

تهٔ چې پکښې نهٔ يې اشنا زهٔ پهٔ خلقو څهٔ کوم
سترګې مې ړندې شه زهٔ پهٔ دغو سترګو څهٔ کوم

ټوله شپه پهٔ طمعه يم سحر کښې سترګې پټې کړم
راشي رالره خوب کښې زهٔ پهٔ دغه راتلو څهٔ کوم

زړهٔ نه زړهٔ ته لار وي ټول عالم راته هم دا وائي
تا پهٔ لار کښې پرېښوم زهٔ د زړهٔ پهٔ لارو څهٔ کوم

# مور

## په فکرونو او سوچونو کښې

اے زما لخت جګره
اے زما د زړه کې سره

اے زما د ستر ګو توره
اے زما د زړه ټکوره

چې ته نه وے پیدا شوے
په نامه وې تش یاد شوے

زه به ستا و مه په طمعه
خلاصه وم له هر غمه

په خیال کښې په سوچونو کښې
ستا خاکه مې جوړوله

بس د مینې یو دنیا مې
په نظر کښې جوړ له

تصور کښې مې لویو لے
په ښنګل به مې ګرځولې

په سختو او تکلیفونو
راغلې ته په خپل وختونو

ستا خندا زما د پاره
بهارونه غوړېدل وو

ستا ژړا زما د پاره
کائنات شنکوړېدل وو

ستا په سترګو به پټېدمه
په هر ځوئ دې رسېدمه

ستا زما تر مېنځه ګُله
څۀ عجيبه شان رشته وه

دَ فکرونو او سوچونو
يو عجيبه سلسله وه

چې بې وخته او دۀ نۀ شې
چرته اوږے پاتې نۀ شې

هسې نۀ وي خوب درغلے
چرته کښې نه ئې لوږې ئے

څو چې لوۓ شوې د زړۀ سر
زۀ دې فکر کړم او تر

هسې نه بهرته لاړ شې
څۀ ضرر درته پېښ نۀ شي

زما زړۀ کښې وسوسې وې
زما دغه اندېښنې وې

کني ته روس نشه عاقل ئې
هسې نه چې نا قابل ئې

څو په سپینه بڼیره زوئ هم
مور ته هسې ماشوم ښکارې

زویه خدائے دې نګهبان شه
هر مشکل دې تل آسان شه

چې مور مړه شي ځے پوئ شي
چې د نیا کښې بې اسرې شي

بیا د مور قبر ته ژاړې
شپه او ورځ بیا داسې وائې

مورې تا پسې خفه یم
په دنیا یو اځې زه یم

څو مور روس دنیانه لاړه
رابه نه شي بیا دوباره

ممتاز روس به خفګان څه کړې
په تیر وخت به ارمان څه کړې

د بڼو د نسر دَ پاسه
بوج دا ښکو مې درنېږي

زهٔ د ځان نه خبر نهٔ يم
تر مې اوښکې مې څڅېږي

ستا دَ يو ترخې خبرې
زور مې دومره زړهٔ له ورشي

لکه څوک دغر دَ سر نه
چې پهٔ زمکه راغورزېږي

د بنګړو شرنګار مې اوري
د سلګو مې خبر نهٔ شو

١ زما ساده جانان چې
پهٔ کوم جهان کښې اوسېږي

***

نن د باران شېبه اوږده شوه جوړې
د اوښکو لار په مخ خوره شوه جوړې

د تودو اوښکو زور کمېږي رو رو
دَ اُمید ونو شمع مړه شوه جوړې

نن به ورځم د یو تپوس د پاره
د محبت لاره کږه شوه جوړې

ویم چې د سین په څپو ځان لاهو کړم
ښکاري نصیب کښې مې تیاره شوه جوړې

ممتاز په هر چا ډېر اِتبار کولو
ځکه نن هر خوانه خفه شوه جوړې

# ښهٔ اخلاق

لارې او کوڅې درباندې ښې ښکارې
ته چې مشر کشر ته سلام کوې

نهٔ دې پهٔ دولت او نهٔ عزت کم شي
تهٔ چې پهٔ خوږه ژبه خوږ کلام کوې

ګرچې تهٔ پهٔ مزکه خو آسمان ې ستهٔ
تهٔ چې د پردي خپل احترام کوې

تهٔ به د هر چا زړهٔ کښې اوسېږې تل
تهٔ چې ښهٔ خصلت پهٔ هر مقام کوې

زهٔ ممتاز له تا نه خفه کېږم نه
تهٔ خو نصيحت ما ته مدام کوې

***

پهٔ ليمو باندي راواوري
پهٔ ننګو اوښکې خوږې شي

پهٔ ګرېوان باران باران شي
پهٔ خُولـه کښې مې راتوې شي

د زړهٔ پهٔ غم بنادهٔ کښې
ددې سترګو پوره لاس وي

کله خاندي به بې واره
پهٔ ژړا به کله سرې شي

دا نمکيني اوښکي ګودم
تږمې ترمې راته ښکاري

ما ذ زړهٔ غم پټ دے ساتلے
دوئ په خهٔ تودې تودې شي

زهٔ خو هر چاته دا وایم
زما هیڅ غم ونه نشته

نو بیا زړهٔ مې داسې ولې
اندرون ذرې ذرې شي

چې د زړهٔ په رنځ اخته شوم
نو زهٔ پوې شوم چې څهٔ چل دے

ممتاز اوس په دغه لوې شوم
چې مې هر چا نه ګیلې شي

ګیله دې په سر سترګو، دې ګیلې سره به ګورو
نن راشه د زړهٔ سره دې قصې سره به ګورو

راځه دَ رقیبانو په سر، تورې خاورې واړوه
راشه زما خواله، دې پښتنې سره به ګورو

زما روستا ترمنځه، د رقیب هرو وخته کار نشته
خبر دے اے جانیه دې لانجې سره به ګورو

ماته دَ بیلتون د تورو شپو خبرې مهٔ کوه
اوس خو رڼا ورځ ده د تیرې سره به ګورو

خیال کښې مې دَ ورځې، او دَ شپې مې په خوبونو کښې
ممتاز در نه لوګے شه ستا وعدې سره به ګورو

ستا مینه لالیه دروغژنه شوه
لار د محبت راته اغزنه شوه

څومره په اخلاص پاندې درغلے وم
هره یو خبره ستا شکمنه شوه

تا پکښې ګړون د فریب وکړلو
څومره پاکه مینه وه خیرنه شوه

نهٔ زما زاري نهٔ مې منت منې
مینه دې لالیه کبرژنه شوه

تهٔ خو په قدم قدم بې لوظه شوې
ځکه خو ممتاز دومره غمژنه شوه

مسته مسته ګرځې جونې وایه په کوم خیال یې ته
خاندې خوشحالیږې، د بابا د کور مشال یې ته

ته چې شوې پیدا نو هغه ورځ نه د بل چا وې ته
ته ښائسته کوونتره یې، ناسته په دېوال یې ته

ستا طلبګاران خو جوړ نې، هر ځای یې ستا په طمعه دي
ځان نه خبرنه یې چې راګېره په کوم جال یې ته

ته د مور ملګرې د بابا د سترګو تور یې ته
ته د سپوږمۍ خور یې او پوره په خپل جمال یې ته

تا د بابا کور په خپل هنر باندې دنیا کړلو
څوک دي خوش قسمته چې د چا راوتې فال یې ته

ته غیرت د دوینو د بابا دسرشمله یې ته
چرې سپکه مه شې په دښتیا قیمتي لال یې ته

ته د پردی کور یې مور دې هروختې پرېشانه وي
ته که به کودر یې یا ولاړه به دېوال یې ته

څه اوکړمه لورې دا د خدائے او رسول لاره ده
خدائے دې جدا مکړه خو جدا رانه في الحال یې ته

ته به شې وادهٔ زهٔ به دې کورکښې سودائي شمه
ګرځم به ټول کورکښې چې به لورې په څه حال یې ته

تخت خو به زهٔ درکړمه خو بخت دې درله خدائے درکړي
شپه او ورځ یې خدائے ته ممتاز دغه بس یو سوال دے

# شپے دَ انتظار

غمځنه نيمه شپه وه هر طرف چپه چپيا وه
دَ سمې ابادۍ نه جوړه شوې يو بېديا وه

وعده يې وه د راتلو ځکه زه ومه په انتظار
يو زه ومه پرېشانه يو زړګے دَه په درزار

ځان سره لګيا وم هم کړل هم مې دبېل
ستورې په خندا وو خندېدل او مسېدل

ډېره اوږده شپه وه په هېڅ رنګ نه تېرېدله
يوه يوه لمحه لکه د کال به تېرېدله

زړګے مې په درزا شو څه کښتا مې واورېدله
ما وې جوړې هغه دے خوپښو وه زغلېدله

ناڅاپه څوک ډېوه په لاس زما په لور راتللو
خدائیګو چې څوک نه وو اورکې وه الوتلو

پرېوتمه کټ کښې څه بې ځانه غوندې ومه
زه چې بې لوظه باندې حیرانه غوندې ومه

سترګو کښې مې خوب وه خو زړګې وه بنا قرار
حیرانه وم چې څنګه به زړګې شي په قرار

په دې کښې مې نظر شو ستورې داسې پرقېدل
دړې وړې ډېوې وې چې آسمان کښې بلېدل

سپوږمۍ مې تر نظر شوه پټه پټه خندېدله
ماته به ئې کتل نږدې نږدې به مسېدله

بې شمېره واړه ستورې ګېرچاپېر ترې تاوېدل
په شمعې د پتنګ غوندې ددې نه زارېدل

دنیا د سپوږمۍ کار دے لکه شمعه بلېدله
ما ورته کاته او خدائیګو خې دا مسېدله

ما وې چې اے سپوږمۍ زما آشنا نه څۀ خبرې
اے ښکلې سپوږمۍ د بې وفا نه څۀ خبرې

سره شوه په خندا او راته شوه د امې ګویا نه
واوره د جفا او د وفا قصه له ما نه

زۀ هم په زړګي کښې ستا په رنګې یو ارمان لرم
زۀ هم یو آرزو او تمنا د تا په شان لرم

ستا کۀ په زړګوټي مسیدلي پرهرونه دي
زما هم دا دي زړۀ باندې یو څو سوي داغونه دي

ما هم د وصال په طمعه غړونه نیولي دي
ما هم انتظار کښې د پر عمرونه اړولي دي

ما هم په دې لار کښې د پرې شپې شوګیرې کړې دي
ما خو دې نه سختې سختې هم لا تیرې کړې دي

ما د چا د پاره مُسپېدل هم ازده کړې دي
ما د چا د پاره خندېدل هم ازده کړې دي

زهٔ ترې خفه شوې مروره ترېنه تلے يم
دې دنيا نه لرې ډېره بره ترېنه تلے يم

چې زړهٔ مې صبر نهٔ شو آخر بيا ورله راغلے يم
اينې ماته کوږې دادې بيا ورله راغلے يم

خو نيت يې د راتلو نهٔ دے نو نهٔ راځي آشنا
خدائيګو چې ددې نه پس به څهٔ راځي آشنا

اے ممتاز اوده شه ټول فکرونه ستا عبث دی
مهٔ ژيا توره غم دې داغمونه دې هم بس دي

پهٔ دې کښې يو نرے غونډې چپه دهوا راغله
سترګې مې شوې پټې پرکالي رابانډې راغله

او زهٔ چې شوم اوده نو دغمونو نه شوم خلاصه
ډېره وُمه ستړې دفکرونو نه شوم خلاصه

سحر چې شوم راويښه نو ستومانه غونډې وُمه
دے خپل سوي قسمت نه زهٔ حيرانه غونډې وُمه

★★★

ته چې جدا زمانه کړې دا به څه شي
جانانه ښه به نه شي که زه درنه خفه شوم

زما د دواړو سترګو توره
دا بې له تا يمه شمکوره

ستا پېغله ليدو مې د زړه کلې خوره شي
جانانه ښه به نشي که زه درنه خفه شوم

ما وه ژوندون تا سره تړلے
اوس رانه کړې جدا ولے

ستا په جفا باندې مې ډېر زړګے خفه شي
جانانه ښه به نشي که زه درنه خفه شوم

دا ژوند خو بیا نهٔ راځي جانه
ولې جدا کړځي زمانه

چې مونږ جُدا یو د غماز زړگے به ښهٔ شي
جانانه ښه به نشي کهٔ زهٔ درنه خفه شوم

ما ته د زړهٔ پهٔ لار نزدې شه
غم مې شي لرې پهٔ دې پوهٔ شه

تهٔ ماله راشه چې دا غیر غماز کچه شي
جانانه ښه به نشي کهٔ زهٔ درنه خفه شوم

ممتاز پهٔ دغه نهٔ پوهیږي
جانه کیله دې پهٔ څهٔ کیږي

د مینې لار هسې نهٔ نیمه لار کښې دوه شي
جانانه ښهٔ به نشي کهٔ زهٔ درنه خفه شوم

# لوبه

جانانه کله به راځې زړه مې ژړیږي
بې تا، نه قلا ږي لالیه کور ته راشه

په ژړا ژاړم سود مې نه شي
بېلتون مې اوړي په زړه غشي

دا بې لتا مې جانه زړه کله صبرېږي
بې تا نه قرارېږي لالیه کور ته راشه

ستا جدايي ده ډېره ګرانه
دنیا په ما بانډې ده ورانه

لکه باران غوندې مې اوښکې راڅڅېږي
بې تا نه قلارېږي لالیه کور ته راشه

ستا د راتلو به څه حاجت شي
د جنازې کټ مې چې اوچت شي

مړې بیا کله په ژړا راژوندې کېږي
بې تا نه قلارېږي لالیه کور ته راشه

---

# فریاد

زهٔ به څهٔ درته بیان کړم
حقیقت به درعیان کړم

ژوند مې څهٔ رنګې تیرېږي
بس یو ږغ دے کمېږي

کله کله فکر اوکړم
خپل ژوندون ته نظر اوکړم

ما شوره ده چې تاوېږي
بس یو ږغ دے کمېږي

هر یو کس په دې دنیا کښې
ژوند تیرې په دې سودا کښې

چې به هر څهٔ زما کیږي
بس یو پښتې دے کمیږي

پهٔ چا بشهٔ وختونه راشي
ښتول غمونه تري په شاشي

پهٔ هر څهٔ الله پوهیږي
بس یو پښتې دے کمیږي

ممتاز دغه بس یو کار که
غم د هر چا په ځان بارکه

خدائے پهٔ دغه خوشحالیږي
بس یو پښتې دے کمیږي

---

## د خپل زوئے کرنل ضیاء (جټ پائلټ دے) ډاډګیرنه

اے د شاهین بچیه، اے د همت زویه
اے په رشتیا پښتونه، اے د غیرت زویه

اے د جذبې خاونده، اے د هوا زمریه
د ارادې خاونده، اے د فضا زمریه

ستا اراده پخه ده، ستا اراده منمه
ده د جذبې نه ډکه، دا ستا جذبه منمه

اے د شاهین بچیه، د شجاعت تکړې
اے د طاقت نه ډکه، اے د طاقت تکړې

اے د فضا زلمیه تۀ د سیلۍ نه تېز یې
اے د تېزۍ نه ډکه تۀ د تېزۍ نه تېز یې

اے د رفتار شاهینه ، د استا رفتار منمه
اے په دښتیا ښکاري ، زهٔ دې د ښکار منمه

قائله ستا د پنجې ، د استا پنجه منمه
نهٔ چې خطا دې شوغه ، د استا شوغه منمه

قائله ستا د جرأت ، د استا جرأت منمه
اے د شاهین بچیه ، ستا شجاعت منمه

زهٔ دې غیرت منمه ، خو دا تهٔ ناست څهٔ له یې
د اغلې پلې غونډۍ ، د اسې ناراست څهٔ له یې

ځان دې غونډ کړے ولې ، د اسې مدهوش ولې یې
زما تورزنه زویه ، د اسې خاموش ولې یې

جوړ په ارام باندې ، تهٔ عادت شوے یې ګني
په ډېر ناکام باندې ، تهٔ عادت شوے یې ګني

اوس خو د ښېښو کښې هغه ، زړهٔ تسمه نشته دے
اوس دې په سترګو باندې ، هغه پرده نشته دے

اوس الوتلې شې ته، بره ختلې شې ته
پاس د هوا له پړدو، لر بر وتلې شې ته

اوس ته آزادې شهره، اوس ته خندا کولې شې
پاس د فضا په سینه، ته مشغولا کولې شې

چې څه دې زړه غواړي، هر څه آزاد کولې شې
خوګه خپل ځان باندې، څه اعتماد کولې شې

پاسه یقین اوکړه ته، وزر نه کار واخله
د پاس فضا اووینه، نظر نه کار واخله

اے د فضا بنکارې، لاندې تښکرو ته ګورې؟
اے د شاهین بچیه، پاسې تیکو ته ګورې

ته څه تپوس خونه یې، ستا نوم شاهین دے ګورې
اا د شاهین د پاره، د پرلوې توهین دے ګورې

***

# یادونه اُمیدونه

اے دمکې زمکې بیا رایاده شوې
بیا زما په سترګو کښې آیاده شوې

نن دَخدائے دکورنه ځان لوګے کړه ته
تاوُشه ترې راتاوُشه چې نایابه شې

داساعت چې تېرشي بیا به رانهٔ شي
خلاصه به دغم ډېره فریاده شې

زهٔ د ذرې په سترګو کعبه وینمه
ولې زما سترګو ته حېرانه شوې

دا ارمان ډېرمومن په ذرهٔ کښې دے
ته ممتان جوړ اوس ویخرلهٔ خوابه شوې

*

# پښتون

زهٔ د پښتون لور د پښتون خور د پښتون مور یمه
د که د پښتونه پښتنه د پښتون کور یمه
زهٔ د مینې پښکله خو دشمن د پاره اور یمه
زهٔ یم پښتنه لوګے لوڅے لهٔ پښتون دور یمه

دا زما پښتون روږې څو هر چا پېژندلے دے
دا چې د غېرت غرته دے ټول عمر ختلے دے
دا چې په پښتو کښې ټومره بره رسېدلے دے
دا چې پهٔ عزت باندې هر کور کښې زېږېدلے دے

دے چې اقرار اوکړي بیا ترِ کله دوستو کېږي نه
دے چې قدم واخلي نو بیا مخې خوځېږي نه
دے د همت توره ده پهٔ یو طرف چلېږي نه
دے همتي ځوان دے مصیبت نه څو ویرېږي نه

دے د زور وجود د خپلو متو لوئ طاقت گڼي

دے د نور پړونې د آسمان نه هم اوچت گڼي

دے د پردې د مور عزت د خپلې مور عـزت گڼي

دے د مور خدمت د مور د پښو لاندې جنت گڼي

دے چې څهٔ وخت ځوان وي نو محفل به د حجرو وي دے

څهٔ وخت چې بوډا شي نو بیا مشر د جرگو وي دے

د حق سره منکر دے هم د خپلو د پردو وي دے

دے داسې مخلص دے چې هر وخت د مشورو وي دے

سل کارونه یې ښهٔ دي خو یو دا یې بد عادت دے

د چا سره چې وران شي نو بیا دے لوئ مصیبت دے

نو بیا نهٔ بخلا کیږي په جرگو نهٔ په منت دے

هر څهٔ په سین لاهو کړي په یو دم په یو ساعت دے

دے پښتون دوکې ته زهٔ بس دومره نصیحت کوم

صبر نه کار اخله دوره زهٔ درته منت کوم

بیا به زهٔ قیصې دې په هر ځائ د شجاعت کوم

زهٔ ممتاز به فخر دوره ستا په شرافت کوم

***

# نصیحت

ستا نیکي نهٔ ضائع کیږي
دا به هلته پکار یږي

څوک که دې بانديي پوهیږي
دین دنیا به دې ښهٔ کیږي

نیت دې هر بنده ته ښه کړه
دا توبنه د ځان سره کړه

مرګ نه پس به هم یادیږي
دین دنیا به دې ښه کیږي

مرګ نه پس خوهرڅهٔ پاتې شي
څوک چې تور لحد کښې کیږي شي

بیا به هلته کښې څه کیږي
دین دنیا به دې ښه کیږي

په دنیا کښې بس یو کار کړه
غم د مرچا په ځان بار کړه

خدائے په دغه خوشحالیږي
دین دنیا به دې ښه کیږي

خدائے انسان دے پیدا کړے
او په دې ئې دے پوهٔ کړے

په نیکئ خدائے خوشحالیږي
دین دنیا به دې ښه کیږي

ممتاز هر چا سره ښه کړه
دا توخه د عقبیٰ او کړه

دا به هلته پکار یږي
دین دنیا به دې ښه کیږي

★★★

مینه چې پیدا شي فنا کېږي نه
ذره چې بنديوان شي آزادېږي نه

دا د غم تیرې څو مره خورې شولې
اوښکې بلوم خو رڼا کېږي نه

اے د اسمان ستورو په جرګه ورځم
یار مې مرور دے پخلا کېږي نه

خکله دې ممتاز نه زړګے صبر کړو
نوک خو د اوري نه جدا کېږي نه

تا چې په سلګو سلګو کښې تېره کړه
مانه څو دې خپله قصه هېره کړه

اوس څو به خبرې هر ځائے کېږي نو
تا د راز خبره چې برسېره کړه

دا څو يو وړه غوندې خبره وه
تا هسې د لږې نه تن دېره کړه

زۀ درسره مینه په اخلاص کَوُم
تا مینه شکونو کښې راګېره کړه

ما وئیل په مرګ به جدا کېږو نه
تا ممتاز د ژوند په لار کښې هېر کړه

# مینه

---

دَ عشق سمندر کښې د مینې یو کشتۍ ده
موږ دواړه پکښې ناست یُو یو ښائسته سپینه سپوږمۍ ده

دا زن زما د پاره پروُن نه دېر بهتر دے
لاړے مې خوا کښې ناست دے نرۍ غځه سیلۍ ده

دنیا نه ناخبره هرڅانه بې خبره
نهٔ کلے نهٔ مالت شته نهٔ کور نهٔ حویلۍ

دَ ګل خوشبوئې چې ورشي بوراله په چمن کښې
تاوېږي دَ ګلانو تیارهٔ کهٔ تروږمۍ ده

خمار خمار موسم دے دَ مینې رنستها ده
آواز دَ لوې راشي خوږه ښکلې شپېلۍ ده

ممتاز غموُنه ورک شو لاړے مې را روان دے
...ونس خاندهٔ خو شحالېږه د غم ورو ستۍ سلګۍ ده

ستا د کبر انتها ده ته پوې نهٔ ئې
دا قصه ښکلا صبا ده ته پوې نهٔ ئې

مال دولت خو د لاس خیرې دے ځان پوې کړه
تا ترلې چې پرې ملا ده ته پوې نهٔ ئې

محبت خو څوک په زور کولے نهٔ شي
دا خبره د رضا ده ته پوې نهٔ ئې

راز د مینې خلق پټ ساتي نادانه
ته په هر ځائے کښې ګلیا یې ته پوې نهٔ ئې

د خپل زړهٔ علاج دې او کړه ته پخپله
ممتاز ولې لا پروا ئې ته پوې نهٔ ئې

# داچمن

---

زهٔ یو ورځ ګلشن ته لاړم
ماوے سیل دَ ګلو کړمه

د بورا په شان به زهٔ هم
هر یو ګل به ښکلومه

په چمن کښې ګرځېدمه
هر یو ګل ته اودرېدمه

شین چمن رنګ ګلونه
زما زړهٔ وهل تهو پوسته

څو یو کس دَ ګلو څوا کښې
ګرځېدو په دې سودا کښې

چې دا ټول چمن زما دے
په هر ګل مې زړهٔ شیدا دے

کله ګل شوکئ له بوټي
وي د کبل لکه ډکي

کله پانړې را شوکئ دے
هوا کښې الوزئ دے

په مستئ داسې روان دے
لېونے د بیابان دے

ناګهانه داسې غږ شو
د مالي آواز برګ برګ شو

دا ته څهٔ رنګې بدبخت ئې
ګل شوکے د هرې لخښتي

ما د زړهٔ وینې ورکړې
دا چمن مې اباد کړے

دا چمن څو د هر چا دے
هسې نه یو زځې ستا دے

د مالي په دې خبره
شوم خوشحاله د زړۀ سره

دا چمن زمونږ چمن دے
دا وطن ښکلے وطن دے

حفاظت به ئې کوو مونږ
هر آفت نه به ئې ساتو مونږ

# کېسله

## دَ هغه تور سرې چې دَ چا دَ خاوند په قبر غوړېدلي څهرې لا هغسې تازه دي

کېسله خو خدايه نهٔ کړم
يو خبره هسې کو مه

زهٔ خو مره بد قسمته يم
چې به رو ښکې تل څڅو مه

زما قسمت خو ښـــکاري
تو رو شپو کښې دے ليکلے

دنيا خو نهٔ ښـــکارېږي
په تيارو کښې ژوند تېر ومه

هر څو که زړهٔ دا ده کړم
چې په صبر به وخت تېر شي

د غرنه روښت غم دے
دربه ښنګه زه سر کومه

د ځان ژړا خو نه کړم
دې چو ته خفه کېږم

ته صبر خدایه ورکړې
دوئ به ښنګه ګذرا کومه

ما دا طمعه کوله
خو شحالي به چرې راشي

روښ څه روایمه خدایه
چې د څه طمعه به کومه

شپه ورځ مې لوئ خفګان دے
په حساب ئې نه پوهېږم

د زړه زور مې روبه شو
نور طاقت به پېدا کومه

چاپېره ځان نه ګورم
په تېر وکښې شو مه کړه

پہ کومہ دوہ روځم
ځان بہ کوم خواتہ رسومہ

ډېروتن ملګرے لارو
تورو خاورو کښې روده شو

یو ځې شومہ پاتې
روس بہ دغہ ژړا کومہ

ځان تہ بہ نهٔ ګورم
ګله تا سره وعده کوم

دا ستا پس پښې یا غیچه بهٔ زهٔ
پہ صبر تازه کومہ

د هر څهٔ تهٔ مالک ئې
خدایه تا ته مې دا سوال دے

بس تهٔ مې مدد روکړې
نور د هس طمعه نهٔ کومه

---

بېګاه مې د آسمان ستورې په چپه خوله شمېرل
مطلب مې بل څهٔ نهٔ وُ، ومه ستا په انتظار

رقيب دې هر څهٔ واېي زهٔ تا نه نهٔ صبرېږم
بس تهٔ مې د زړهٔ سرې نور په چا نهٔ کوم اتبار

د مينې په باغچه کښې مې يو ګل په نخښه کړے
ابدم به يې په اور بل کښې يا جوړوم به ترې نه هار

---

# "زوې مور ته"

ستا د خوږې خولې نه زار شم مورې
ستا دُعاګانو باندې يار شوم مورې

تا چې په څهٔ خوارولوئې کړے يم څهٔ ويلے نشم
د استا احسان زهٔ په دنيا کښې خلاصولے نهٔ شم

زهٔ چې پيدا شوم نو په هيڅ نهٔ پوهيدمه مورې
د اسې نادان وم چې به هسې ژړيدمه مورې

په څهٔ خوارو او په محنت باندې دې لوئې کړمه زهٔ
په اشارو او په خبرو دې بيا پوهې کړمه زهٔ

تهٔ به وې ويښه ولې زهٔ دې اوده کولم مورې
په پښتو لاسو به دې زهٔ ورو ورو ټپولم مورې

په زرر قربان به دې د بډو منع کولم مورې
ځان دې کړولو ولې زهٔ دې آبادولم مورې

څومره خوارې څومره محنت دې ما سره کولو
زهٔ به پوره شوم تا به بیا هم محبت کولو

مورې چې پوره شوه زلمے شوم دا ګفتار کومه
ستا په خوارۍ او په محنت باندې اقرار کومه

ما نه به دا سې کار نهٔ کیږي چې خفه شې پرې تهٔ
دَ ملک او قوم خدمت به کومه چې غره شې پرې تهٔ

د خپلې خاورې به زهٔ داسې حفاظت کومه
زهٔ مقابله به د دشمن په خپل طاقت کومه

زما وطن ته به دشمن بره کتلے نهٔ شي
پښې به ئې ماتې کړمه دلته به راتللے نهٔ شي

زهٔ د مستان په پاکې غېږې دا څوکند کومه
دغه مې لوظ د دغه وعده دغه قسم کومه

دَ ژوند په دې کتاب کښې ټخبنه کوم يو ځائے کښې کېږدم
زهٔ کومه پاڼه اولولم او کومه پکښې پرېږدم

په هر يوې پاڼه کښې جُدا دَغم داستان دے
زهٔ کومه قصه اووائيم او کومه پکښې پرېږدم

ددې نه خبر نهٔ وم چې به دا قِصه هم کيږي
زهٔ لاړمه لاهُو شومه اوس څهٔ به دا وُچتېږم

زما قسمت دې خدايه په تيارهٔ کښې دے ليکلے
زهٔ خو رمه تينده کونه نو زهٔ چرته قدم کېږدم

زما توره نصيبه په رشتيا دغم نه ډک ئې
زهٔ څهٔ تدبير اوس اوکړمه په چل ئې نهٔ پوهېږم

خبره ستا د مینې دَ هر چا نه زهٔ پټوومه
ستا مینه لوئې سوغات دے زهٔ ئې ذړهٔ پورې لګوومه

دا مینه لوئې نعمت دے هم په دې دُنیا جنت دے
ستا مینه چې مې مل شوه نور په هر څهٔ اورلګوومه

لالیه مهربانه تهٔ جدا مهٔ شې له مانه
دا ستا د راتلو لار به په ښو زهٔ جارو کومه

نن راشه دَ زړهٔ سره د هیچا نه مهٔ کو ویره
په طمعه درته ناسته یم په زنه خال لګومه

ممتاز خو ټوله ستا ده ستا مینه کښې ئې سودا ده
زهٔ ستا د محبت خبرې کله چا ته کومه

په هر طرف چې ځې نو زهٔ به ستا د لاس همسا شم
ما مهٔ پرېږده یوا ځې زهٔ به ډېره وارخطا شم

بې تا خو زهٔ ژوندون هرو په ژوند نهٔ حسابوم
تهٔ ولې راته وائې چې زهٔ پاتې تر سبا شم

رقیب زموږ تر مینځه د نفرت لاړې تُوکلي
دا هر څهٔ به صفا شي خو که زهٔ درنه پخلا شم

برباده زندګي ده، هیڅ په چل ئې نهٔ پوهېږم
په کومه لاره ورشم او په کومه ترېنه راشم

ممتاز داسې صادقه ده چې هر څهٔ به هوا د کړي
خو تهٔ دې نیت صفا کړه چې زهٔ پوهه په دنیا شم

خواره زاره زندګي شوه په غمونو په فکرونو
هسې ژوند له خوارې شوه په دې دومره تکليفونو

د غمونو په دلدل کښې نه د ځان نه د جهان شوم
هسې تېره مې ځواني شوه د دنيا په فرېبونو

د سبا په طمعه ناست، د ماښام تياره لا نه ده
په ژړا مې سترګې سرې شوې، په سلګو په فريادونو

زه خپل فکرونه نه کړم، تا پسې مې زړه خوږېږي
چې ته څه رنګې لا هوشوې د اجل په درياب ونو

په رضا د خدای رضا يم خو صبر سوال ترې کړمه
خدايه ته ناراضه مه شې زما په فريادونو

د بنده طاقت ته ګورې، امتحان يې هومره اخلي
خدايه ماله طاقت راکړې په دې سختو ساعتونو